حـم( ) تَنزِيـلٌ مِّـنَ الـرَّحْمَنِ الـرَّحِيمِ( ) كِتَـابٌ فُصِّـلَتْ آيَاتُـهُ قُرْآنًـا عَرَبِيًّـا لِّقَـوْمٍ يَعْلَمُونَ( )بَشِيرًا وَنَذِيرًا فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ( ) [فصلت: ١-۴.[

یعنی: «حم. این کتاب از جانب خداوند بخشاینده و مهربان فرو فرستاده شده است. کتابی است که آیات آن واضح و روشن است در حالی که قرآنی به زبان عربی است برای قومی که نمی‌دانند. مژده دهنده و ترساننده است، پس اکثر مردم از آن روگردان شدند. پس این قوم نمی‌شنوند.« رسول خدا صلی الله علیه وسلم مشغول تلاوت این آیات بود و عتبه گوش می‌داد ناگهان عتبه بر زمین نشست، سپس بدنش به لرزه درآمد، دست‌هایش را به پشتش انداخت و بر آن‌ها تکیه زد و همواره گوش می‌داد و گوش می‌داد و رسول خدا صلی الله علیه وسلم تلاوت می‌کرد و تلاوت می‌کرد تا این که به این سخن خداوند رسید:

فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ [فصلت: ١٣.[

یعنی: «ای پیامبر! اگر (اهل مکه از این کتاب) روی بگردانند، پس به آن‌ها بگو: من شما را از عقوبتی چون عقوبت عاد و ثمود می‌ترسانم.«

وقتی عتبه این تهدید عذاب را شنید لرزه بر اندام شد و پرید و دستش را بر دهان آنحضرت صلی الله علیه وسلم گذاشت تا از قرائت بازایستد. باز رسول خدا صلی الله علیه وسلم به تلاوت آیات ادامه داد تا این که به آیه سجده تلاوت رسید و سجده نمود و باز سرش را از سجده برداشته و به عتبه نگاه کرد و گفت: شنیدی ای ابو ولید؟ گفت: بله. آنگاه فرمود: حال تو بدانی و این آیات. عتبه برخاست و در حالی که آنان در شوق انتظار به سر می‌بردند نزد آنان رفت، آنان به همدیگر می‌گفتند: به خدا قسم! ابوولید به غیر از آن روحیه‌ای که رفته بود، نزدتان می‌آید. وقتی عتبه در جمع آنان نشست، آن‌ها پرسیدند: چه چیزی پشت سر گذاشتی؟ گفت: به خدا قسم! من چیزی مانند آن نشنیده‌ام. سوگند به خدا! آن نه شعر بود و نه سحر و نه کهانت.

ای قریش! از من اطاعت کنید و این امر را به من واگذار نمایید این مرد را به امر و کارش رها کنید، ای قوم! به خدا قسم! این سخنش را که من شنیدم خبر بزرگی در بر دارد. او خواند:

حم( ) تَنزِيلٌ مِّنَ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ( ) تا این که رسید: فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ

آنگاه من دهانش را نگه داشتم و او را به صله‌ی رحم سوگند دادم تا از خواندن بازآید و قطعاً شما می‌دانید که اگر محمد چیزی بگوید دروغ نمی‌گوید، پس من می‌ترسم که بر شما عذاب فرود آید. سپس ابوولید اندکی خاموش شد و به فکر فرو رفت و قومش خاموش گشته و چشمانشان به او خیره

شده بود، سپس گفت: به خدا قسم! در سخنش شیرینی بود و البته که بسیار مطبوع و دلپذیر بود. آری، او مانند درختی است که بالایش بسیار ثمردار و در پایینش میوه خیلی فراوان است. همانا او نابود نمی‌شود و او زیر دست خودش را درهم می‌شکند و چنین سخنی را بشر نمی‌تواند بگوید. این از دست انسانی ساخته نیست.

آن‌ها گفتند: ای ابوولید! این شعر است شعر. ابوالولید گفت: به خدا سوگند! کسی از من در شعر داناتر نیست و من کسی را در رجز و قصیده و نه به اشعار جنیان کسی داناتر از خود سراغ دارم به خدا سوگند آنچه که او می‌گوید با هیچکدام از این‌ها شباهت ندارد و همواره عتبه در مورد رسول خدا صلی الله علیه وسلم با قومش بحث و مناقشه می‌کرد! آری، درست است که عتبه در دین اسلام داخل نشد، اما درونش به دین اسلام نرم گردید. پس ببین چگونه این اخلاق رفیع و این مهارت نیکوی شنیدن، در عتبه اثر گذاشت با وجود این که او از سرسخت‌ترین دشمنان بود.

روز دیگری قریش گرد هم آمدند و »حصین بن منذر خزاعی« پدر صحابی بزرگوار «عمران بن حصین» را به نمایندگی از طرف خود جهت گفتگو و مذاکره نزد رسول‌خدا صلی الله علیه وسلم و بازداشتن او از دعوتش فرستادند.

ابوعمران نزد رسول خدا صلی الله علیه وسلم رفت، در حالی که اصحابش در پیرامون او نشسته بودند و آن جمله‌ای که قریش همواره بر زبان می‌آوردند گفت: تو جمع ما را پراکنده ساختی و افکار ما را متفرق نمودی. رسول خدا صلی الله علیه وسلم در کمال لطف و آرامش خاموش بود، تا این که از سخنانش فارغ شد، رسول خدا صلی الله علیه وسلم در کمال ادب و احترام گفت: ای ابوعمران! آیا سخنانت تمام شد؟ گفت: آری. آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمود: پس آنچه من از تو می‌پرسم جواب بده، ابوعمران گفت: بگو. گوشم به توست.

آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمود: ای ابوعمران! تو امروز چند معبود را می‌پرستی؟ گفت: هفت معبود! شش تا در زمین و یکی در آسمان! رسول خدا صلی الله علیه وسلم پرسید: به هنگام ترس و امید به کدام یکی رجوع می‌کنی؟ گفت: به آن که در آسمان است. باز آنحضرت صلی الله علیه وسلم در کمال لطف و آرامش گفت: ای حصین! اگر تو اسلام بیاوری من تو را دو کلمه یاد می‌دهم که به تو سود و فایده می‌دهند. حصین از جایش تکان نخورد و بلافاصله اسلام آورد و گفت: یا رسول الله! دو کلمه‌ای را که به من وعده داده‌ای، یاد بده! آنحضرت صلی الله علیه وسلم فرمود: بگو: «اللهُمَّ ألْهِمْنِي رُشْدِي، وَأَعِذْنِي مِنْ شَرِّ نَفْسِي» «خدایا! رشد و هوشیاری امر را به من الهام کن و من را از شر نفسم نجات بده.«

آه ! چه‌قدر این برخورد عالی و شدت تأثیر آن در مردم به هنگام مخالفت با آنان زیبا و جالب بوده است. در واقع این برخورد اسلامی، و شیوه دعوت با حکمت و بصیرت است که در دعوت کفار و جذب آنان به سوی خیر، مفید و سودمند واقع شده است.

یکی از جوانان جهت تحصیل به آلمان سفر کرده و در یک واحد آپارتمان سکونت نموده بود. روبروی خانه‌ی او یک جوان آلمانی سکونت داشت که در میان آن‌ها هیچگونه رابطه‌ای وجود نداشت . بلکه فقط همسایه بودند.

اتفاقاً دانشجوی آلمانی به سفر رفت و توزیع‌کننده روزنامه‌ها، هر روز روزنامه‌ها را در کنار در منزل وی می‌گذاشت دوست جوان ما بر اثر انباشته‌شدن روزنامه‌های زیاد متوجه می‌شود و از حال همسایه‌اش جویا می‌شود. برایش معلوم می‌شود که او به سفر رفته است، از این جهت روزنامه‌ها را می‌پیچد و در یک قفسه مخصوص می‌گذارد و پیوسته هر روز آن‌ها را جمع کرده و مرتب می‌نماید.

پس از این که همسایه‌اش بعد از دو یا سه ماه برمی‌گردد به او سلام گفته و بازگشت وی را از سفر با سلامت تبریک عرض می‌نماید. سپس روزنامه‌ها را به او تقدیم می‌کند و باز به او می‌گوید: من گمان کردم شاید شما موضوعی را دنبال کرده یا در مسابقه‌ای اشتراک داشته‌اید، از این رو تصمیم گرفتم تا آن را از دست ندهد ! همسایه آلمانی با تعجب به این رفتار انسانی او توجه نموده و می‌گوید: آیا در قبال این کار مزد یا پاداشی می‌خواهی؟ دوست ما می‌گوید: خیر، بلکه دین ما به ما دستور می‌دهد تا به همسایه نیکی و خوشرفتاری نماییم و شما همسایه من هستید، باید من با شما نیکی و خوشرفتاری کنم. سپس دوست ما با این همسایه به نیکی رفتار می‌کند، تا این که او به اسلام مشرف می‌شود.

سوگند به خدا ! این است بهره و لذت حقیقی دنیا، و آن این که شما احساس نمایید در حساب با مردم راست هستید. شما با خاموشی به جا و مناسب در زندگی خویش، و به هرچیز حتی با اخلاق‌تان، خداوند را عبادت کنید. تعداد بی‌شماری از کفار هستند که دسته‌ای از مسلمانان با تعامل و برخورد غیر انسانی خویش مانع دخول آن‌ها در اسلام شده‌اند، به کارگران ستم نموده‌اند، در بازار آن‌ها را فریب داده‌اند و در همسایگی آنان را اذیت کرده‌اند ! پس بشتاب و با تغییر رویه و تعامل اسلامی و انسانی و محبت‌آمیز با آنان رفتار نماییم.

روشنگری

...

»بهترین دعوتگران کسانی هستند که با اعمال و رفتارشان در انسان‌ها تأثیر می‌گذارند تا گفته‌هایشان. **(از کتاب: از زندگی ات لذت ببر)**

# د دعوت ،ارشاد، جلب اوجذب کمیسیون د مارچ میاشتنی راپور

دروان (۲۰۱۴م ) کال د مارچ په میاشت کې هم د تېرو میاشتو په شان د اسلامي امارت د دعوت ،ارشاد ،جلب او جذب کمیسیون په هڅو او د ځایي مجاهدینو په ملاتړ د افغانستان په مختلفو ولایاتو کي ۴۰۹ تنه چې د کابل اداري اړوند بیلا بیلو ارګانونو کې په کاربوخت وو د حقایقو په درک کولو د دغه فاسد او ګوډاګي رژیم څخه را ووتل او د اسلامي امارت د مجاهدینو سره یو ځای شول.

ګرانو لوستونکو هم د اهم د تسلیم شوو کسانو تفصیلي میاشتني ارقام :

فاریاب:۲۴تنه عسکر

سرپل: ۱۴۴تنه عسکر

فراه :۴تنه عسکر

ارزګان:۱۲تنه عسکر

هرات:۳۵تنه عسکر

غزني:۲تنه عسکر

زابل: ۸تنه عسکر

هلمند:۱۵تنه عسکر

کندهار:۱تن عسکر

کندوز:۹تنه عسکر

ننګرهار:۷۷تنه عسکر

بدخشان:۷ تنه عسکر
پکتیکا:۷تنه عسکر
پکتیا:۲تنه عسکر
بلخ:۱تن عسکر
لغمان:۲تنه عسکر
کونړ:۴۴ تنه عسکر

او پروان ولایت کې ۷ تنه عسکر د کابل د منفور رژیم له لیکو څخه را ووتل او د اسلامي امارت د مجاهدینو سره یوځای شول.

د اسلامي امارت د اتلو مجاهدینو سره یوځای شوو باد رکه هیوادوالو مختلفه النوع لویې اوورې وسلې ،مخابرې ،وسایط اویوزیات شمېر مهمات مجاهدینو ته وسپارل.

د کابل د منفور رژیم څخه راجلا شوو او د اسلامي امارت له مجاهدینو سره یوځای شوو هیوادوالو وعده وکړه چې نور به د خپل د دین او وطن د خارجي او داخلي مزدورانو سره هیڅ راز تعلق نه ساتي ،د خپل مظلوم ولس او مجاهدینو رونو سره به همکاري کوي ،ترڅو لوی خدای جل جلاله ژر تر ژره زموږ له ویاړلي خاوري څخه د کفر ،فسق ، ،اشغال ،فحشاء او ګمراهیو کرغیړن تېغرتیول کړي او د مسلمانانو د خوښي یو سوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چې د ټول افغانان پرې راټول شي.

د اسلامي امارت د دعوت ،ارشاد ،جلب او جذب کمیسیون مشرتابه دوی ته هرکلی وو ایه ،انعامونه او جایزې یې ورکړې او د دوی همدانیک اقدام یې ډیر وستایه چې دیر غلګرو او لاسپوڅي رژیم څخه یې راووتل او د افغانستان اسلامي امارت د مجاهدینو سره یې خپل پیوستون اعلان کړ.

د افغانستان اسلامي امارت د ګران هیواد څخه د وحشي یرغلګرو د شړلو او د اسلامي او ملي نظام د رامنځته کولو په موخه د ران سپېڅلی مقاومت په لړکې د نظامي فعالیت ترڅنګ سیاسي ،فرهنګي ،تعلیمي او دعوتي هڅې هم ګړندی کړې دي د اسلامي امارت غښتلي مجاهدین د پراخو پوځي لاسته راوړنو څخه علاوه هره میاشت د هیواد په بیلابیلو ولایتونو او ولسوالیو کې د دعوت او ارشاد کمیسیون په هڅولکه پورته چې ذکر شول د کابل اداري څخه په سلهاوو تنه کارمندان راوزي او د اسلامي امارت غېږې ته پنا راوړي.

دعوت او ارشاد کمیسیون

دحضرت ابوهريرة رضي الله تعالى عنه مور

# دحضرت ابوهريرة رضي الله تعالى عنه مور

مولوي سيال

**دحضرت ابوهريرة رضی الله عنه دمور نوم أميمة دصبيح بن الحارث لور وه**

که څه هم دأميمې زوی حضرت ابوهريرة رضی الله تعالی عنه داسلام دمشرف کيدلو اودنبي کريم صلی الله عليه وسلم سره د دوامدار ي ملګرتيا وياړ ترلاسه کړی ؤ ، خومورېي لا تردې دمه له اسلام نه ليري پاتې وه ، يوه ورځ يې دحضرت ابوهريرة رضی الله عنه په وړاندي دنبي کريم صلی الله عليه وسلم دمبارک شان سپکاوی وکړ ،چې په دې سره حضرت ابوهريرة رضی الله عنه سخت خفه شو" خوڅه يې کولای شول !ځکه چې په قرآن کريم کې دمورا وپلار سره دسلوک په اړه ډيرڅه نازل شوي وو" نوپه ژړا ژړا درسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو او نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته يې وويل : يارسول الله ! ته زما مور ته دعاوکړه چې الله تعالی يې په زړه کې داسلام دنور ډيوه بله کړي ، سمدستي رسول الله صلی الله عليه وسلم لاس پورته کړ او دعايې ورته وکړه ، له دعاسره سم هلته دهغې په زړه کې يوسپيڅلی حرکت پيل شو،داسلام سره يې مينه په زړه کې وټوکيده ،سمدستي يې غسل وکړ ،جامي يې بدلي کړي اودحضرت ابوهريرة رضی الله عنه په مخ کې يې دلااله الا الله محمدرسول الله مبارکه کلمه وويله ، له دې سره دحضرت ابوهريرة رضی الله عنه په سترګو کې دخوښۍ له امله اوښکې راغلي او نبي کريم صلی الله عليه وسلم يې دهغې له ايمان راوړلو خبر کړ ، رسول الله صلی الله عليه وسلم دالله تعالی شکر اداء کړ .

هو؛ هغه له نړۍ وکوچيده ،خودخپل سپيڅلي اسلام کيسه يې لاتراوسه دکتابونوپه پاڼو کې اوړي اورا اوړي ، اودهغې سعادتمني دشفيق زوی ياد دنړۍ په هرګوټ کې تکراريږي . اوپه ډيرو پاکو ژبو جاري وي :

عن ابي هريرة رضی الله تعالی عنه قال : قال رسول الله صلی الله عليه وسلم .............

# دشرعي امير تعريف ، حکم ، او غرض

مولوي سيلاب (عمر)

د شرعي امير او غير شرعي امير توپير د اسلام د دين د سترو عالمانو په تعريفونو کې نغښتى دى ، د اسلام په تاريخ کې د نړۍ د څرخنده کرې په مخ هغه نوميالي عالمان دي چې په خپله زمانه کې د لوړ بصيرت څښتنان او د نړۍ په کچه د پېچلو قضيو د حل او فصل لپاره د مرجع په توګه پېژندل کېده او خصوصا په عقائدو او سياسي علوموکې دلوړ لاس څښتنان وو ، دوى شرعي امير په لاندې تعريفونوکې راپېژني :

وَعَرَّفَهَا فِي المَقَاصد ( سعد الدين "التفتازاني": الفصل الرابع: في الإمامة وهي ) رِيَاسَةٌ عَامَّةٌ فِي الدِّينِ وَالدُّنْيَا خِلَافَةً عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رد المحتار مطلب شروط الإمامة الكبرى ج(١) ص(٥۴٨) .

وَعَرَّفَهَا البيضاوي في "طوالع الأنوار": الإمامة عبارة عن خلافة شخص من الأشخاص للرسول عليه السلام في إقامة القوانين الشرعية ، وحفظ حوزة الملة، على وجه يجب اتباعه على كافة الأمة.

دسترو عالمانو د امامت اړوند پورتنيو ذکر شوو تعريفونو مجموعه داسې شوه : امامت په ديني او دنيوي امورو کې د يوه لوړواکي شخص نبوي نيابت دى .

مفهوم الإمامة والإمام: الإمام مصدر أمّ الناس صار لهم إماماً يتبعونه ، والإمامة: رياسة المسلمين ، والخلافة هي الإمامة الكبرى، وإمام المسلمين: الخليفة ومن جرى مجراه. كتاب الامامة ج(٢) ص(١) سعيد بن علي بن وهف القحطاني.

د امامت او امام مفهوم : امام (عربي لفظ دى ) د امّ الناس ، څخه را اخيستل شوى دى ( لارښود ) چې انسانان يې (دحکم ) پيروي کوي.

امامت او خلافت: د مسلمانانو لوړ رياست، امارت، سلطنت، خلافت، او پاچاهي ته ويل کيږي.

نَصْبَ الإِمَامِ الأَعْظَمِ فَرْضٌ بِلَا خِلَافٍ بين أَهْلِ الحَقِّ. بدائع الصنائع، کتاب ادب القاضی.

د امام د ټاکلو حکم: علاء الدين الکاساني په خپل کتاب بدائع الصنائع کې ليکلي دي: د مسلمه امت اهل حق عالمانو په اتفاق د رايو د امام ټاکل فرض ګڼلی دی.

عن ابن عباس قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم «الإِسْلَامُ والسُّلْطَانُ أَخَوَانِ توأمان لا يصلح واحد منهما إلا بصاحبه فالإسلام أس والسلطان حارس وما لا أس له يهدم وما لا حارس له ضائع» كنز العمال في سنن الأقوال والأفعال برقم (١۴٢١٣) وايضا اخرجه فی فضيلة العادلين أبو نعيم الأصبهاني. وجامع الاحاديث للسيوطی.

(أس): الأس بالضم أصل البناء، غريب الحديث.

ژباړه: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وويل: رسول الله صلی الله عليه وفرمايل: اسلام او سلطان (قدرت) دوه غبرګولي ورونه دي، يو پرته له هغه بل څخه نه اصلاح (تربيه) کيږي، بلکې يوه اصلاح پر هغه بل پوري تړلې ده، اسلام تهداب دی او سلطان ساتونکی دی، هرشی چې تهداب نلري هغه له منځه ځي، هرشی چې ساتونکی نلري هغه زيان مومي.

والملوک والأئمة متى كانوا متمسكين بالشرائع كانت الفتن زائلة والمصالح حاصلة. تفسير اللباب أبو حفص عمر بن علي الدمشقي.

ژباړه: (عمر بن علی الدمشقی په خپل کتاب اللباب فی علوم الکتاب کې ويلي دي) امامان او پاچاهان چې ترکوم وخته د شريعت پيروان وي فتنې به له منځه ځي او ټول مصلحتونه به تر لاسه وي.

عن ابن عمر، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: «لن تهلک الرعية وإن كانت ظالمة مسيئة إذا كانت الولاة هادية مهدية ولكن تهلک الرعية وإن كانت هادية مهدية إذا كانت الولاة ظالمة مسيئة». مسند الشهاب:جـ(٢) صـ(٩٣) برقم (٩٥١). وكنز العمال:جـ(٢) صـ(٣١) برقم (١۴٧١۴). وفضيلة العادلين - أبو نعيم الأصبهاني صـ(١٥٢).

ژباړه: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وويل: رسول الله صلی الله عليه وفرمايل: هيڅکله هغه رعيت نه هلاکيږي، که څه هم ظلمونه او ګناوي کوي، چې ذمامداران (اميران) يې خدای پالونکي او نوروته هم دغه لاره ښيې، مګر هغه رعيت له هلاکت سره مخ کيږي که

څه هم دوی خدای پالونکي وي اونوروته هم دغه لاره ښيي ، چې زمامداران ( اميران ) يې ظالمان او ګناه کې لاهو وي .

فأهم وظائف الخلافة إقامة الشريعة وتمكينها و المحافظة على أسسها ، فالسلطة السياسية في الإسلام تنبع من الدين وعليها أن تحرسه وترعاه.

ژباړه : دخلافت تر ټولو مهمه وظيفه د شريعت جاري کول دي ، تقويه کول ، او د هغه ساتنه ده ، اسلامي سياست له دين څخه سرچينه اخلي ، له‌دې امله دهغه ساتنه او رعايت حتمي دی .

ويؤكد الماوردي هذه العلاقة بين الدين والسلطة السياسية حين يقرر أن الدين دون سلطة سياسية معرض للاضمحلال والزوال، وإذا انفصلت السياسة عن الدين انقلبت إلى استبداد وطغيان. ولكن ليست غاية الخلافة تمكين الدين فحسب، بل إن من وظائفها الهامة سياسة الدنيا وعمارتها. موسوعة الرد على المذاهب الفكرية المعاصرة لعلي بن نايف الشحود .

وعلى ذلک فالسياسة جزء لا يتجزأ من الإسلام ، ولا فرق في الإسلام بين السياسة والدين.

ژباړه : امام ماوردي د سياسي قدرت او دين تر منځ دغه اړيکه نوره مضبوطه کړې ده: دين پرته له سياسي قدرت څخه د زوال او له منځه تلو په درشل کې دی ، که سياسي قدرت له دين څخه جلاشي د ظلم ، خيانت ، او سرکشۍ لاره خپلوي ، هوکي د خلافت غرض دا نه ده چې يوازي د شريعت په نافذېدو به اکتفاء کوي ، بلکي مهمه وظيفه يې دا هم ده چې د دنيوي چارو تربيه او د ترقي پلانونه پياده کوي .

د امام ماوردي د خبري انځور داسي شو ، چې سياست د اسلام نه بېلېدونکی جزء دی ، او په اسلام کې د دين اوسياست هيڅ توپير نشته .

نتيجه : له پورتني حديث شريف او دسترو عالمانو له تصريحاتو او څېړنو څخه جوته شوه چې دشرعي امير تر ټولو لومړۍ وظيفه د اسلامي نظام پلی کېدل دي ، ځکه شرعي امامت ، امارت ، سلطنت ، خلافت ، نبوي او پيغمبري نيابت دی ، کوم نظام چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم او د هغه خلفاء راشدينو په نظري توګه ښوولی اوعملي توګه پلی کړی دی دهمغه نظام تعقيب ددغو ذمامدارانو ايماني او عقيدوي دنده ده.

## اسلامي سياست نبوي نيابت دعالمانو حق دی

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَانَتْ تَسُوسُهُمْ أَنْبِيَاؤُهُمْ . رواه البخاری برقم (۳۱۹۲) ومسلم برقم (۳۴۲۹).

تسوسهم: تحكمهم وتقودهم تدبر أمرهم وترعى شئونهم.

ژباړه: حضرت ابوهريره رضی الله عنه وويل: رسول الله عليه وسلم وفرمايل: د بني اسرائيلو سياست (حكومتي چاري) دهغو نبيانو چلولې.

قال النووي رحمه الله: "(تَسُوسهُمْ الْأَنْبِيَاء) أَيْ: يَتَوَلَّوْنَ أُمُورهمْ كَمَا تَفْعَل الْأُمَرَاء وَالْوُلَاة بِالرَّعِيَّةِ, وَالسِّيَاسَة: الْقِيَام عَلَى الشَّيْء بِمَا يُصْلِحهُ" انتهى.

امام نووي رحمه الله ذكر كړې دي (تسوسهم الانبياء) يعنی: د بني اسرائيل د امورو داسي سرپرستي يې كوله لكه څه راز چې اميران او واليان په خپل رعية واک چلوي.

سياست: د يوشي د اصلاح لپاره تدبيركول دي.

عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «وَإِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ» رواه ابوداؤد في سننه برقم (۳۱۵۷) والترمذی فی جامعه برقم (۲۶۰۲).

ژباړه: حضرت ابودرداء رضی الله عنه وويل: له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه مي واروېده چې هغه وفرمايل: په يقيني توګه عالمان د انبياؤ وارثان دي.

قال ابن نجيم "السِّيَاسَةَ هِيَ فِعْلُ شَيْءٍ من الحَاكِمِ لِمَصْلَحَةٍ يَرَاهَا وَإِنْ لم يَرِدْ بِذَلِكَ الفِعْلِ دَلِيلٌ جُزْئِيٌّ".

"البحر الرائق" جـ(۵) صـ(۱۱).

علامه ابن نجيم رحمه الله ويلي دي: سياست د امير هغه كاري اصولوته ويل كيږي چې د يوشي د اصلاح په غرض چلوي كه څه هم دهغه لپاره يې كوم جزئي دليل نه وي ترلاسه كړی.

وَالسِّيَاسَةُ نَوْعَانِ سِيَاسَةٌ عَادِلَةٌ تُخْرِجُ الحَقَّ من الظَّالِمِ الفَاجِرِ فَهِيَ من الشَّرِيعَةِ عَلِمَهَا من عَلِمَهَا وَجَهِلَهَا من جَهِلَهَا وقد صَنَّفَ الناس في السِّيَاسَةِ الشَّرْعِيَّةِ كُتُبًا مُتَعَدِّدَةً وَالنَّوْعُ الآخَرُ سِيَاسَةٌ ظَالِمَةٌ فالشَّرِيعَةُ تُحَرِّمُهَا. البحر. جـ(۵) صـ(۷۲). و ردالمحتار كتاب الحدود. وتفصيله فی معين الحكام صـ(۱۲۹).

سياست دوه ډوله دی، يو سياست عادله دی، چې دهغه په وسېله د مظلوم حق له ظالم څخه اخيستل كيږي، دا شرعي سياست دی، قوانين او احكام يې له شرعي څخه اخيستل كيږي، څوک چې له شرعي علوموڅخه بې برخي وي هغه شرعي سياست نشي چلولای، دويم ډول سياست ظالمه دی چې شرع حرام ګڼلی دی.

وعرّف ابن خلدون السياسة الشرعية بأنها "حمل الكافة على مقتضى النظر الشرعي في مصالحهم الأخروية والدنيوية الراجعة إليها، إذ أحوال الدنيا ترجع كلها عند الشارع إلى اعتبارها بمصالح الآخرة، فهي في الحقيقة خلافة عن صاحب الشرع في حراسة الدين وسياسة الدنيا به" انتهى من "مقدمة ابن خلدون" (ص ۹۷).

علامه ابن خلدون شرعي سياست په دې ټکو راپېژني: ټول خلګ هڅول چې دنيوي او اخروي امور د شريعت په چوکاټ کې اصلاح او منسجم کړي، ځکه د شارع په وړاندي دنيوي امور هغه وخت اعتبار لري چې د آخرت فائدې پکښې نغښتې وي، په حقيقت کې سياست د دين په ساتنه او د دنيوي چارو په اصلاح کې نبوي نيابت دی. رسول الله صلی الله عليه وسلم د نبوي سياست په لومړي پړاوکې د دين او عقيدې د ساتني اقدامات کړي دي په دويم پړاوکې د آسماني شرع سره سم د امت مسلمه پر دنيوي چارو داسي سياست چلولی دی چې د آخرت ټولي ښېګړې پکښې نغښتې وې همدا راز اصحابو رضی الله عنهم او له هغو څخه وروسته اميرانو د خپل حکومت او سياست په دوران کې د مسلمان امت په دې توګه سرپرستي کړې ده چې تر ټولو لومړی يې له دين او عقيدې څخه دفاع، او دنيوي ټولي چاري يې د شرعی قانون په مټ سمبالي کړې وې.

عن ابن عباس قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم «الإِسْلَامُ والسُّلْطَانُ أَخَوَانِ توأمان لا يصلح واحد منهما إلا بصاحبه فالإسلام أس والسلطان حارس وما لا أس له يهدم وما لا حارس له ضائع» كنز العمال برقم (۱۴۲۱۳).

ژباړه: حضرت ابن عباس رضی الله عنهما وويل: رسول الله صلی الله عليه وفرمايل: اسلام او سلطان (قدرت) دوه غبرګولي ورونه دي، يو پرته له هغه بل څخه نه اصلاح (تربيه) کيږي، بلکي يوه اصلاح پر هغه بل پوري تړلې ده، اسلام تهداب دی او سلطان ساتونکی دی، هرشی چې تهداب نلري هغه له منځه ځي، هرشی چې ساتونکی نلري هغه زيان مومي.

پورتنيو صحيحو حديثو ته په کتو سره پيغمبر موروث دی عالمان يې وارثان دي مستحق د ميراث، نائب د موروث هغه څوک دی چې د وراثت سلسله يې ثابته شي دعالمانو وراثت او نيابت د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په قولي حديث شريف ثابته شوه نو معلومه شوه چې اسلامي سياست، امارت، سلطنت، رياست، او خلافت د عالمانو منصوصي حق دی او مستحق يې عالمان دي، پوره ديارلس سوه (۱۳۰۰) کلونه مسلسل زموږ د ګران هيواد افغانستان او همدا راز د اسلامي نړۍ د لروبر هيوادونو سياسي او حکومتي چاري عالمانو پر

مخ ببولي ارګ او ممبر دواړه دعالمانو ترواک لانديؤ ، د اسلام شعائر، ديني مقدسات ، عقائد او مذاهب ، ديني عنعنات او ارزښتونه ، د اسلامي خاوري ثغور او سرحدات ټول محفوظ او خوندي کړيؤ ، نبوي او محمدي امت يې متحد او يوموټی ساتلیؤ ، له کله نه چې غربي عيسايي او يهودي شيطانانو د ټولي اسلامي نړۍ دارالخلافت په ترکيه کې دړي وړي کړ ، انګريزانو اسلام ضد مستقل کفري ډيموکراسۍ دين د جمهوريت نظام نوي کاله وړاندي د ( ۱۹۲۴ ) عيسوي کال د مارچ د مياشتي په (۳) مه نيټه د سيکولر او نيشنليست ليبرال مصطفی کمال ( اتاترک ) په څېره کې د اسلامي نړۍ په دارالخلافت ترکيه باندي مسلط کړ ، ددين پالو عالمانو واک او قدرت يې غصب کړ ، ددې منحوسي څېرې له واک ته رسېدو وروسته په ترکيه کې د اسلام مبين دين له حکومتي نظام څخه په بشپړه توګه وشړل شو په مسجدونو او کورونوکې محاصره پرې ولګېده ، د خبيث کمال اتاترک په مټ د اسلامي نړۍ په نورو هيوادونوکې هم ډيموکراسۍ سرښکاره کړ څړيکه يې آن زموږګران هيواد افغانستان ته هغه مهال راورسېده چې امير امان الله خان له انګريزانو سره د خبيثي ډيموکراسۍ مسوده ومنله نو کافرانو د خپلو روزل شوو او تربيه شوو اشخاصو په مټ دلته هم دخداى پالونکو عالمانو واک او قدرت غصب کړ، له حکومتي نظام او تشکيلاتو څخه يې عالمان ګوښه کړل عالمانو د ډېرو ځورونو په ګاللو او زغملو يوازي ممبر په خپل واک کې وساته ، په تدريجي توګه د اسلام د مبين دين ځاى ډيموکراسۍ ونيو د نظام له قوانينو څخه شريعي قوانين مخ په کوچېدو شول ، د شرع د اصطلاح نومونه لکه امير، سلطان ، ملک او پاچا په غير شرعي نوم لکه جمهور بدل شوو ، سلطنت ، امارت ، شاهي په جمهوريت بدل شوو دوخت په تېرېدو هرڅه بدل شول آن تردې چې لوستي کسان د اسلامي اوکفري نظام توپير نشي کولاى نا لوستو څخه داسي تمه نه کېږي ، د کافرانو روزل شوو تاليخټو نبوي محمدي متحد يوموټی امت يې د تنظيمونو ډلو ټپلو په رامنځ ته کېدو ټکره ټکره کړ ، دا عين دکفري ډيموکراسۍ له لويو هدفونه څخه ؤ ، دکفري تاليخټو روزل شوو په اصطلاح روشنفکره اهل کارو له برکته قومي ، سمتي او ژبني د نفاق اورته په پراخه پيمانه لمني ووهلي شوې ، بد اخلاقي ، فسادات ، نفرتونه ، ناموس فروشی ، وطن فروشی ، د شرعي د احکامو پايماليدل ، ددين سپکاوی ، د کفري نظرياتو او عقائدو تسليط ، بې نظمي ، او د فيډرالي نظام د تجويز په توطيه د هيواد تجزيه کېدل ، ناحقه قتلونه ، ظلمونه ، دحقوقو ضياع ، د راتلونکو نسلونو د تياره برخليک توطيې اوج ته ورسېدې، راز راز عقائد هيواد ته ننوتل .

د امت مسلمه نجات او د ټولو فتنو علاج يوازي او يوازي اسلامي نظام دی ، نور هرډول تدبيرونه د مست سيلاب مخې ته د شګو بندونه دي ، پر عالمانو لازم دی چې خپل غصب شوی حق اسلامي نظام چې نبوي نيابت دی له غاصبو قوتونو څخه په هرقيمت چې وي ترې واخلي او دغه پيغمبري ميراث خوندي کړي ، د کافرانو په لاس روزل شوي غاصبينو په سپېڅلي دين او شرع ملنډې وهې قدرت ته د رسېدو د لاس آله يې ترې جوړه کړې ده ، غاصبينو د اسلام او کفر توپير نشي کولای دوی نبوي نيابت د ځان حق ګڼي ، له دې سره سره نه يې حق دی او نه يې مستحقين دي ، غاصبينو د اسلام سپېڅلی کامل دين چې د انسانيت د ټول حيات ضابطه ده او ددنيوي او اخروي دواړو ښېګړو ضامن او متکفل دين دی ، دوی ټولې نړۍ ته د موسوي او عيسوي منسوخو اديانو غوندې بې کفايته معرفي کړ ، عالمان دې نور دغاصبينو په غولونکو تبليغاتو نه غولېږي چې دوی په عامو محاورو کې مشهوره کړې ده چې ( د عالمانو له سياست سره څه کار دی دوی دې خپل محراب او ممبر خوندي کړي ) دوی د عالمانو دپاره نبوي ريښتينی نيابت عيب ګڼي او دخپلو ځانو لپاره د سوچ درواغو ادعا او کاذب سياست افتخار ګڼي ، دا هوبهو د سيکولرکافرانو راز دی چې دغاصبينو ترخولو راوزي ، که عالمان خپله ذمواري اومسئوليت سمبال نکړي ، د ذلت او محکوميت ثقافت د ځان لپاره خيروګڼي ، نو ديني ارزښتونه ، عقائد ، عبادات ، معاملات ، حقوق ،عنعنات ، مناکحات ، انساب ، حدود ، قصاص ، اخلاق ، او امن به له منځه ولاړ شي ، نسلونه به ضائع شي ، بې اسلامه مسلمانان ، بې ايمانه مؤمنان ، بې عقيدې معتقدين ، بې علمه عالمان ، بې حريته احرار ، بې واکه واکمنان او غير اسلامي عامه انتخاباتو د رايو د فقر سوالګر پنځه کلني حکومتونه به رامنځ ته شي چې د فساد او رشوت له اصافو سره سره له اميره تر ماموره به د تل لپاره د ملت له خزانې څخه غلا د دوی وجيبه وي، هغه فتنې به وزېږوي چې بيا مخنيوی به يې د ميلينونو مسلمانانو د سرونو خيراتونه غواړي او مسئوليت به يې ديني عالمانو ته راجع وي .

د اسلامي نظام د قيام لپاره د امت مسلمه په هر شخص نارينه اوښځينه باندې د عالمانو هر اړخيز ملاتړ فرض او لازم دی ، ځکه د لوی خدای رضا ، د محمدي امت نجات ، دنيوي او اخروي ښېګړې او په هيواد کې د امن هوسا ژوند يوازې او يوازې د اسلامي نظام په قيام کې نغښتې دي .

حبیب مجاهد

# طالبانو، د رژیم او غربي میډیا پالیسي ونګولي

په افغانستان کې له سیاسي ، پوځی او تبلیغاتي لیدلوري حالت دحساسیت اوج ته رسیدلي ، په داسې حال کې چې امریکایان له هیوداده تښتي ، کوښښ کوي دځپل پاتي شوني رژیم لپاره اعتبار کسب کړي او په وړاندې موجود جهادي خوځښت یې بې اعتباره او معمولي وښیي.

د همدې لپاره یې دا ډیره موده تبلیغاتي لوبه پیل کړې ده ، بېلا بیل تورونه ، افواهات ، ړانده تهمتونه او دواکمن رژیم د ځلولو لپاره نمایشي هڅې دهمدې بهیر برخه دي.

د رانوي شوي لمریز کال لومړی شل ورځې له دې اړخه ډیرې مهمې دي ، چې له یوې خوا په همدې ورځو کې په کابل کې د زردشتي اختر نړیوال مراسم جوړیږي ، او ورپسې د ولسمشرۍ او ولایتي شوراګانو انتخابات ترسره کیږي ، چې دواړه مهم رویدادونه دي.

واکمن رژیم او غربي اشغالګر هڅه کوي ، داسې وښیي چې مقابل جهادي خوځښت یې ځپلی دی ، او دوی کولای شي دومره ستر دولتي مراسم په سمه توګه ترسره کړي ، دهمدې لپاره که له یوې خوا دپوځي عملیاتو خبرې کوي ، له بلې خوا یې تبلیغاتي لوبه هم ګرمه ساتلې ده.

خو له بلې خوا دپسرلي په رابریدو سره جهادي بریدونو دهر کله په نسبت زیات قوت او شدت موندلی ، نږدې هره ورځ دحکومت په حساسو ادارو پوځي بریدونه ترسره کیږي ، دارګ په څومترۍ کې ساعتونه ساعتونه جنګ دوام پیدا کوي او هیڅ دولتي مرکز له برید څخه د خوندیتوب امنیتي تضمین نه لري.

په تیرو څو ورځو کې په کندهار ،فراه ، ننګرهار ، کابل او کونړ کې ډلییز استشهادي بریدونه چې مطبوعاتو یې په منظم ډول دپایلو له اعلان څخه انکار وکړ ، د مکان او زمان دحساسیت له اړخه خورا مهم او اغیزمن عملیات وو ، چې د حکومت د ځواک او حاکمیت ادعاء یې په صفر کې ضرب کړه.

د ارګ په څومترۍ کې دسرینا هوټل په عملیاتو کې چې کله یو تن مشکوک خبریال دنامعلوم جهت له لوري ووژل شو ، ارګ میشتو او غربي مشاورینو یي همدا ښه فرصت وباله ترڅو لږ تر لږه د ورپیښیدونکي رسوایۍ او شکست مطبوعاتي ازانګه کنترول او تریوه حده خپله رژیدلې آبرو وساتي.

په همدې خاطر رسنیزو تمویلوونکو غربي مراجعو په خپلو ماتحتو رسنیو امر وکړ چې د خبریال د وژل کیدو په بهانه دي دانتخاباتو دپای ته رسیدو ترنیټې پورې دطالبانو خبرونه تحریم کړي.

مغرضو رسنیو هم دا ښه بهانه وبلله او په یوه اعلان سره یې دجهادي خبرونو په خپرولو بندیز ولګاوو ، مګر ددې اعلان په سبا مجاهدینو په عملي عکس العمل سره په کابل او دهیواد په نورو سیمو کې داسې عملیات ترسره کړل ، چې رسنۍ یې په خپله پریکړه کې له چیلنج سره مخامخ کړې ، طالبانو په کونړ کې د عسکرو د معاش اخیستلو په مرکز او په کابل کې دانتخاباتو د کمیسیون په یوه مهم مرکز داسې مهال برید ترسره کړ ، چې په عین وخت کې حامد کرزی په همدې سیمه کې وو چې له پارلمان څخه بیرته دارګ په خورا روان وو.

دې حساسو عملیاتو رسنۍ مجبورې کړې ، چې دعملیاتو راپورونه نشر کړي ، او په دې ډول خپله پریکړه په خپله ماته کړي.

له بلې خوا دوروستیو عملیاتو په نتیجه کې ارګ میشتي مجبور شول د نوروز دنړیوالو مراسمو لمانځل له پغمان څخه کابل ته انتقال کړي ، ځکه د بریدونو په نتیجه کې د واکمن رژیم امنیتي بې وسي هرچا ته ظاهره شوه.

راپورونه وایي دسرینا هوټل له عملیاتو وروسته له کابل څخه هغه ټول بهرني کار کوونکي تښتیدلي دي چې کابل ته د انتخاباتو د څار په موخه راغلي وو ، دغو کسانو د وروستیو څو بریدونو نه وروسته په رژیم باندې خپل اعتماد له لاسه ورکړی نو ځکه یې بیرته په راغلې لار د تیښتې مخه نیولې.

یو شمیر کتونکي په دې باور دي چې که چیرې عملیاتي لړۍ همداسې دوام پیدا کړي ، شاید واکمن رژیم مجبور شي چې د انتخاباتو پروسه تعطیل کړي ، چې دا به دمجاهدینو ستره بریا وي ، ځکه مجاهدینو په خپله یوه اعلامیه کې ویلي ، چې د اشغال په سیوري کې انتخابات یوه غولوونکي پروسه ده چې غربیان غواړي له دې لارې خپل ګوډاګیان واک ته ورسوي.

په ټوله کې روان عملیات او په نتیجه کې یې رامنځته شوي دپالیسیو او وضعیت تغیرات ښیي چې مجاهدینو هم په نظامي او هم په تبلیغاتي محاذ کې ددښمن پالیسۍ ننګولې دي او دښمن یې دائما د متزلزل او کاواکه حالت په دائره کې محصور ساتلی

# جنګي جنايتونه (مارچ)

سيدسيعد

د روان (۲۰۱۴ز ، ) کال د مارچ په لومړۍ نيټه رسنيو خبر ورکړچي د پروان ولايت د کوه صافي ولسوالۍ په منډيکول سيمه کي د يرغلګرو ځواکونو او داخلي عسکرو د خپل منځي نښتي په پايله کي درې تنه ولسي هيوادوال شهيدان شوي دي.

د مارچ په اوله نيټه خبر ورکول شوچي تېره ورځ اشغالګرو عسکرو د تخار ولايت د اشکمش ولسوالۍ په چشمه مايان سيمه کي د خلګو پر کورونو چاپه وهلې ، او د کورونو تر تلاشي کولو وروسته يې ځلورتنه ملکي وګړي بنديان کړي دي.

د مارچ په ۲مه د لغمان ولايت د الينګار ولسوالۍ په سنګر سيمه کي د يرغلګرو په بمبار کي دوه ولسي وګړي شهيدان شوي دي.

د مارچ په ۲مه د لوګر ولايت مرکز پل علم ته نژدې د اشغالګرو عسکرو په بمبار کي دوې ښځي او دوه نارينه شهيدان شوي دي.

د مارچ په ۳مه د هلمند ولايت د ګرشک ولسوالۍ د نهر سراج په يخچال سيمه کي يرغلګرو چاپه وهلې، ځلورتنه ولسي وګړي يې بند يان کړي دي.

د مارچ په ۱۰مه د کندز ولايت د قرول تپې په سيمه کي اربکيانو يو ملکي وګړی (قطب الدين )شهيد کړی دی.

د مارچ په ۱۱ مه يرغلګرو ځواکونو د هلمند ولايت د واشير ولسوالۍ د شاپښتۍ په ناخومګري سيمه کي د چاپې پر مهال يو دوکان دار بندي کړی دی.

د مارچ په ۱۱مه د غزني ولايت د مقر ولسوالۍ په چمبرانو کلي کي اربکيانو د مولوي صاحب نجيب الله په کور چاپه وهلې، او نو موړی يې شهيد کړی دی.

دمارچ په ۱۲مه دهلمند ولایت دسنګین ولسوالۍ دسیدول کاریز په بابا فقیر سیمه کې کورنیوعسکرویوملکي هیوادوال (ولیجان د رؤف ماما زوی ) شهید کړی، کالي یې ترې ایستلي ،په ټانګ پورې یې تړلی اودسنګین په بازار کې یې کش کړی دی.

دمارچ په ۱۲مه د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ د شنیز درې په یوسف خیل سیمه کې دبې پیلوټه الوتکې په برید کې یوملکی سړی ( خدای نور )شهید شوی دی.

دمارچ په ۱۳مه دهلمندولایت د واشیرولسوالۍ په دباري کلي کې اشغالګرواوداخلي عسکروپنځه ویشت تنه ملکي هیوادوال بند یان کړي دي.

دمارچ په ۱۴مه دزابل ولایت د ارغنداب ولسوالۍ په موچي کلي باندې کورنیوعسکرودچاپې پر وخت پنځه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دمارچ په ۱۴مه نیواکګروعسکرودبغلان ولایت د برکه ولسوالۍ دفلول په کمر جمالي کلي دچاپې پر مهال دخلګو کورونه تلاشي کړي اوبیایې ملا امام (مطیع الله ) له ځان سره دبندي په توګه وړی دی.

دمارچ په ۱۷مه د فراه ولایت دپرچمن ولسوالۍ په چراغ خاج کلي کې ددغې ولسوالۍ ولسوال (حاجي داود )د عبدالغنی او حافظ قدرت الله په نوم هیوادوالوکورنه د تلاشۍ پر مهال چورکړي اودیادوشووکسانودنه شتون په حالت کې یې دوه کوچنیان چې یو۲کلن اوبل د۲۰شپووو له ځان سره وړي اوبیایې شهیدان کړي دي.

دمارچ په ۲۰مه د ننګرهار ولایت د هسکې مینې ولسوالۍ کې اووه تنه قومي مشران چې دطالبانو سره یې دخوتنو بندیانو دخوشې کیدو په اړه خبرې کولې، تر خبروکولووروسته خپلو کورنوته دراستنیدوپر وخت داخلي عسکرو ډزې پرې کړې ځلور تنه یې شهیدان کړي اودرې کسه یې ژوبل کړي دي.

دمارچ په ۲۱مه یرغلګروځواکونود ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ دوزیرو پیره خیل په عمر او وتي کلي باندې چاپه وهلې، د تلاشۍ پر مهال یې خلګو ته مالي زیانونه اړولي، یوملکي هیوادوال یې شهید کړی ،یوه ښځه یې ژوبله کړې اوهمدا رازیې دوه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دمارچ په ۲۲مه دکاپیسا ولایت دتګاب ولسوالۍ په نوروزخېلو سیمه کې دداخلي عسکروپه ډزو کې یوماشوم شهیداودوه کوچنیان ټپیان شوي دي.

دمارچ په ۲۵مه دکندهار ولایت دمیوند ولسوالۍ په کوکي دښت سیمه کې یرغلګرو ځواکونودافغان عسکروپه ملتیاله کورونوڅخه ځلورتنه ولسي وګړي رایستلي اوشهیدان کړي دي.

دمارچ په ۲۲مه دفراه ولایت دبالابلوک ولسوالۍ په ګراني سیمه کې دیوې دودیزې میلې په لاره کې اربکیانو اوپولیسو د خلکوځخه دتذکیرې او ثبت نام کارت نه درلودو په صورت کې سړي سر زر – زر افغانۍ اخیستې دي.

دمارچ په ۲۲مه یرغلګروپوځیانو دهلمند ولایت په نادعلي ولسوالۍ کې دوه ملکي وګړي بندیان کړي دي.

دمارچ په ۲۷ مه اشغالګرو عسکرو دشپنیو عملیاتو په لړکې د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په لیوانو سیمه کې چاپه وهلې، دکورونو دتلاشۍ څخه وروسته یې لس تنه ولسي وګړي دبندیانو په توګه له ځان سره وړي دي.

دمارچ په ۲۷ مه د بدخشان ولایت د جرم ولسوالۍ په فرغا منج سیمه کې دداخلي عسکرو په ډزو کې پنځه تنه ملکي هیوادوال ژوبل شوي دي.

دمارچ په ۲۷مه دننګرهار ولایت دخوګیانوولسوالۍ په وزریروکمو سیمه کې دامریکایې عسکرو په چاپه کې یو ملکي سړی شهید شوی دی.

دمارچ په ۲۷ مه دلوګر ولایت دخرخ ولسوالۍ په چاربرجه سیمه کې دداخلي عسکرودهاوان په ډزو کې دببرک نومي کلیوال دکور یوه ښځه شهیده شوې او پنځه ماشومان یې ژوبل شوي دي.

دمارچ په ۲۸مه اشغالګرو عسکرو د بلخ ولایت د شولګر ي ولسوالۍ په سیاب سیمه کې دوه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دمارچ په ۲۸مه دفاریاب ولایت ددولت اباد ولسوالۍ په شور دریا سیمه کې دداخلي عسکرودهاوان مرمۍ دلګیدوله امله یوه ښځه شهیده شوې اودرې کوچنیان ژوبل شوي دي.

دمارچ په ۲۹ مه مابنام مهال اربکیانو د کاپیسا ولایت د نجراب ولسوالۍ په پچغان سیمه کې یو دیني عالم ( مولوي صاحب سید میر ) له خپل کورڅخه بهر کړی اوبیا یې شهید کړی دی.

دمارچ په ۳۰مه رسنیو خبر ورکړچې د لوګر ولایت دخرخ ولسوالۍ په مربوطاتو کې دداخلي عسکرو په هغوعملیاتو کې چې ټاکنو ته دزمینې برابرولو په موخه پیل شوي ؤ، ولسي خلکو ته دسراومال ډیرزیانونه اوښتي دي. دځایي خلګو دوینا له مخې د یادو شووعملیاتو په ترڅ کې یوولس تنه ملکي هیوادوال شهیدان شوي اوڅلویښت تنه ژوبل شوي دي.

مأخذونه: [بي بي سي راډیو، ازادي =، افغان اسلامي اژانس، پژواک، خبریال ویبپاڼه، لراوبر= ، نن ټکی اسیا=اوبینوا=]

# شهيدي قافلې

| نوم | د پلارنوم | د نيکه‌نوم | ولايت | ولسوالي | کلی | قوم |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شهيد شاه مقصود رحمه‌الله | حاجی ملوک | | میدان وردګ | مرکز | کوټه عشرو | |

نوموړي خپل عصري علوم تر دوولسم ټولګۍ پوري د رستم خيلو په عـالي ليسـه کـي سرته رسولي وه، چي وروسته د ميدان ښار عـالي دارلمعلمين تـه کاميـاب شـو او پـه ۱۳۹۰ هجري ش کي له دارالمعلمين څخه فارغ شو.

څرنګه چي نوموړی په يوه ديندار‌ه کورنۍ کي زيږدلی وو، له ماشومتوب څخه يي له جهاد سره بې کچې مينه درلوده.

له تيرو څو کلونو را هيسی د مجاهدينو په خدمت کي مشغول وو، بـالاخره يـي سنګر ته مخه کړه‌او له‌خپلو مجاهدينو وروڼو سره د اشعالګرو پـه خـلاف اوږه پـه اوږه جنګيدی.

شهيد شاه مقصود د ۱۳۹۰کال د جدي په ۲۵ تـاريخ د امريکايـانو لـه خوا ونيـول شو، چي د ۱۳۹۱ کـال د جدي‌د مياشتي پـه ۱۷ تـاريخ د بګرام لـه زندان څخه راخلاص شو، او يو وار بيا يي‌د اسلامي امارت تر قيادت لاندي له خپلو مجاهدو وروڼو سره خپـل جهاد ته‌ادامه‌ورکړه. بـالاخره پـه ۱۳۹۲ هجری ش کـال د سنبلی پـه ۵ د اجيری اردو لـه خوا په شهادت ورسيد. روح دي يي‌ښاد او ياد دي‌يي‌تل‌وي. نحسبه کذلک

| نوم | د پلار نوم | د نیکه نوم | ولایت | ولسوالي | کلی | قوم |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شهید عصمت الله فاتح | حفیظ الله | | میدان وردګ | مرکز | ممیخیل | |

شهید (فاتح) د ۱۳۷۲هش کال په اړدوکي دې فاني دنیا ته سترګی رارښي کړې.

داچې نوموړی په یوه دینداره کورنۍ کې زیږیدلی وو؛ نوله ماشومتوبه یې لاله جهاد سره بې پایه مینه دلوده.

شهید عصمت الله ابتدایي زدکړې د خپل کلي له ملا امام څخه زده کړې، او عصري علوم یې د میدان ښار په مشهوره عالي لیسه حضرت سلمان فارسي رضی الله تعالی عنه ،کي تر ۱۲ ټولګۍ پوري سرته ورسول، او دیني زدکړې یې بیا د ګاونډي هیواد پاکستان د پیښور ښار د بورډ په سیمه کي د تاج آباد (دارالعلوم الفاروقیه) کي ولوستلې ،له عادت سره سم به یې د ژمي په وخت خپل درسونه ویل او داوړي په موسم کي به یې له مجاهدینوسره داشغالګرو په خلاف جهادي سنګر ګرم ساتلی وو.

له دې سره سره چې د عمر په لحاظ ډیر کم وو خو عزم ،همت او ځیر کتیا ته یې خلګ حیران وو، تل به یې د دښمن په خلاف کامیاب پلانونه طرحه کول، بالآخره په ۱۳۹۲ هجري ش کال د میزان په ۱۱ نیټه د شهادت لوړ مقام ته ورسید، اناالله واناالیه راجعون

## شهادت

**عبدالغفور مفکر**

ډیـــــــري مینـــــــــي لېـــــــــونۍ در پســـــــــې ګرځـــــــــي
چنارونـــــــــه ګـــــــــل غـــــــــوټۍ در پســـــــــې ګرځـــــــــي
یـــــــې عنقـــــــا خـــــــو پیـــــــدایش دي عنقـــــــا مـــــــه شـــــــه
مســـــــلمانه نـــــــاوکۍ درپســـــــې ګرځـــــــي
شـــــــفق واخســـــــتلو رنـــــــګ دا ســـــــتا لـــــــه وینـــــــو
ځکـــــــه لمـــــــر ســـــــتوري ســـــــپوږمۍ در پســـــــې ګرځـــــــي
دکـــــــوثر مرمـــــــرین جـــــــام یـــــــې کـــــــه پیـــــــدا شـــــــوې
پـــــــه خنـــــــدا مســـــــتې ځـــــــوانۍ در پســـــــې ګرځـــــــي
اې دخـــــــدای خـــــــوږه رحمتـــــــه شـــــــهادته !
مفکـــــــر تـــــــل پـــــــه خوښـــــــۍ در پســـــــې ګرځـــــــي

## شهید حافظ القرآن محمد رحمه الله

شهید محمد رحمه الله او تخلص یی حمزه دي ، د مرحوم حاجی محمد خواص خان زوی تقریباً ۲۲ کاله پخوا یعنی ۱۳۷۲ ه ش کښی د هجرت په دیار کښی د پاکستان دباړی په سیمه کښی په یوه دیندار او جهاد پاله کورنی کښی دنیاته سترګی وغړولي.

دشهید والد ګرامي حاجی محمد خواص عالم او باعمل او د تصوف له شایقینو څخه ؤ ، په مدرسه دارلعلوم سیفیه کی څو کاله مدرس پاتی شوی ؤ او همغه ځای څخه یی خپل ځوی د ه دینی تربیه لاندی نیولي ؤ ، او په اسلامی خذبه یی سمبال کړی ؤ ، کله چی د شهید محمد رحمه الله والد ګرامی وفات شو ، نو محمد شهید رحمه الله خپلی اسلامي زده کړی ته پخپل اصل ټاټوبی افغانستان ننګرهارولایت بټی کوټ ولسوالی د انبارخانی په کلی کښی انوارالقران مدرسی کښی حفظ تکمیل کړو.

نوموړی شهید له ماشومتوب څخه دښو اخلاقو خاوند ؤ ، خاموش صفته مجاهد ؤ ، دلمونځ کوونکی ، تهجد ګزاره، همیشه تلاوت کوونکی ؤ ،

په الله میین ،دحورو عاشق ،

دحفظ له تکمیل څخه وروسته دینی کتابونه شروع کړل ، په مدرسه نجم المدارس دمارکو بازار کښی ، خو د حالاتو دتقاضا مطابق درسونه ته نیمه کی پاتی شو او عملاً دجهاد سنګر ته را ووتو ، او عملی جهاد شروع کړو ، او د اشغالګرو قواو په خلاف نوموړی شهید په جهادی مبارزه کښی دیر زړور او دلیر او بهادر انسان ؤ ، او خیر خواهی سره مشهور ؤ ، له اختلافاتو او تنازعاتو مذهبی او قوي څخه بی یی زیاته کرکه کوله ،

نوموړی شهید دبټی کوټ ولسوالي په اکثرو جهادي کارنامو کښی برخه اخیسته ، تردي چی نوموړي شهید د جهاد سره له ډیر مینی له کبله استشهادي برید لپاره هم شکل کړي ؤ خو حالات مساعد نشو.

دنوموړی کورنی نه دا آخري شهید دی او نه یی اولین شهید دي لا کورنی دجهاد سربښندنی ، فداکاري او قربانی په هر وخت کښی ورکړی دی.

دنوموړی شهید تره حاجی محمد ناصح صدیق نومیږی چه د ننګرهار ولایت کی یی ده روسانو خلاف هر اړخیزه مبارزه کړی دی او دظفردجهاد وال غونډ قوماندان په صفت یی ډیری قربانی ورکړی دی چی یو ځل پخپله د روسانو سره په مخامخ جنګ ټپي هم شو.

ترڅو چه کمونیستی رژیم راوپرځیدو او دمجاهدینو حکومت راغی.

## دشهید وصیت :

شهید حافظ القرآن محمد رحمه الله د ښو اخلاقو خاوند، خاموش صفته مجاهد، همدارنګه د شهید همیشه دا ارمان ؤ چه اشغالګرو قواوو سره مخامخ جګړه کښی شهید شی، هما غه ؤ چه صلیبی قواوي د چهاردهي سیمی ته دعملیاتو دپاره را روان ؤ چه دمجاهدینو لخوا د کمین سره مخ شول او دری ساعته سخت جنګ وشو چی دصلیبی او اشغالګرو دوه زغروال ټانګونه ویجاړ کړل او پکی سپاره ټول امریکائی عسکراو اجیری اردوعسکر مردارشول او د جهنم کندی ته ورټیل ووهل شول.

چه د حوت دمیاشتی د خالی په ورځ ۱۳۹۳ ه ش سمون خوری شهید حافظ القرآن محمد رحمه الله سره دلسو ملګرو سره د شهادت لوړی مقام ته په شهادت ورسیدل، نوموړی شهید خپل یو ملګری ته د تلیفون په واسطه خپل ملګروته دا وصیت کړیؤ چی د وه رکعات لمونځ وکړي او دعاراته وکړي، او ماته بخشش وکړیؤ بیا به په ورځ د قیامت سره ګورو.

د نوموړی شهید همیشه دا آرمان ؤ چی مخامخ جګړه کی شهید شي، ده دنیا هیڅ شي ورته خوند نه ورکاوه، د الله او دهغه په رسول باندی مئین ؤ.

اکثر وخت به یی جومات کی تیراو وه، داشراق لمونځ او ده څاښت لمونځ پابندی کونکی، د حرامو څخه به ځان ساته او د عیشو کارونو او لوبو څخه به لیری ګرځیدو.

محمد رمضان ترابي

---

## د شهید عبید الله جان «جهادمل» ژوند لیک

شهید عبیدالله «جهادمل» د شهید صوفي محمد انور زوی، د وردګو د سیداباد ولسوالۍ د شنیز درې د باغک د کلي په یوه دینداره کورنۍ کښې په ۱۳۶۲/۲/۲۵هش کال د امتحانونو او کړاوونو دې فاني دنیا ته سترګې غړولې.

د شهید عبیدالله «جهادمل» والد مکرم شهید صوفي محمد انور د شوروي اتحاد د سوسیالیستي امپریالیزم پر ضد جهادکښې رغنده رول د تاریخ زرینې کرښې دي، د کمینونو په ترڅ کې یې د سرو روسانو پر کتارونو په زیات شمیر وسلوالو بریدونوکې برخه لرله او په دې سپڅلې لاره کې په ۱۳۶۳/۱۱/۲۷هش کال د سیداباد ولسوالۍ پر مرکز په یوه لویه جګړه

کي له۱۲ تنو نورو مجاهدینو ملګرو سره د شهادت ستر مقام ته ورسید ، روح دي يې ښاد او یاد دي يې تل وي. اناالله و انا الیه راجعون

## د شهید عبیدالله «جهادمل» شخصیت او مسئولیت

نوموړی د افتخاراتو سمبول، د تقوی او دیانت نمونه، نهایتاً مخلص ، په شرعی أمورو کي مطیع له ښو اخلاقو او عاداتو برخمن وو ، په افغانستان کي د صلیبی نیواکګرو د اشغال پر مهال د ناتو تړون پر ضد د اسلامی امارت له سرسپارلو غازیانو سره یوځای سو.

د صلیبی جګړې په جریان کي لمړی په پټه په مالي او هم به يې عملاًد جګړې په ډګر کي برخه اخیسته.

کله چي په ۱۳۹۱/۲/۱۵هش کال ، خان سید «بلال» د اشغالګرو د بې پیلوټه الوتکو په هوایي برید کي شهید شو ، عبید الله « جهادمل » د جهاد په لیکوکي د یوه غښتلي مجاهد په توګه را څرګند شو ، د اشغالګرو او د ګوډاکي رژیم په مزدورو عسکرو اوکارمندانو يې کارنده بریدونه ترسره کړل ، د شهید حاجی صاحب زیارت ګل د وتلي ګروف مرستیال او د سید اباد ولسوالۍ په نظامي کمیسیون کي عضو او د منفجره موادو مسئولیت يې هم په غاړه وو ، له شهادت ۱۹ورځې مخکې د سید اباد ولسوالۍ د ماشین کلا په سیمه کي په یوه وسلوال برید کي پر پښه او لاس باندي زخمی هم شو.

د اسلام د لارې د سرسپارلي لښکر وتلی لاروی ، ځیرک ، هوښیار، او بردبار شخصیت ـ محمد عبید الله جان «جهادمل» او ورسره دوه ۲ نور ملګري هریو سعود احمد چي په حکیم الله هم مشهور وو او ولي جان ټول د وردګو د سید اباد ولسوالۍ د جنګ جاي په سیمه کي د اشغالګرو د بې پیلوټه الوتکې په هوایی برید کي د شهادت لوړ مقام ته ورسیدل. اناالله واناالیه راجعون

## {د شهید الحاج زیارت ګل (شمشاد) ژوندلیک}

شهید الحاج زیارت ګل (شمشاد ) دحاجی ملوک زوی د وردګو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د هفت اسیاب دحکیم ښاره کلي په یوه دینداره کورنۍ کښي په (۱۳۷۰)هجري شمسی کال کي دې فاني دنیا ته سترګې غړولې، د ژوند په هسکو او ټیټو کي د ستاینې وړ ځانګړتیاوې به ئي د میړني اولس فداکارو شازلمیو ته له ویاړه ډک افتخاري سمبول وي.



د اسلام د سپېڅلې لارې د دې اتل سپه سالار، د جهاد په زرینه پاڼه کې رنګینې کرښې به ان شاءالله د ځوان نسل همیشنۍ تګلاره وي.

پر افغانستان د امریکا او متحدینو د وحشي یرغل پر مهال شهید حاجی صاحب زیارت ګل په سعودی عربستان کې وو، هلته د ژوند اړوند ضرورتونو په بناء د مورو پلار، ورونو او خپل اولاد لپاره د حلالې نفقې په برابرولو مصروف وو.

پر عراق د امریکا د متجاوز ائتلاف استکباري یرغل او هلته د جهادي خوځښت له پیل سره سم د عربي نړۍ د ځوان نسل تنکي ځوانان د جهاد دفریضې د اداء په موخه د اسلامی مکلفیت له مخې د یهودي او عیسایي نیواکګرو د ځپلو او له اسلامی نړۍ څخه په تور مخ د شړلو په منظور د عراق په لور وخوځېدل، بناءً حاجی صاحب زیارت ګل هم له سعودي عربستان څخه د مجاهدینو له یوې ډلې سره په زیات شوق او حماسي جذبه د الله جل جلاله د عظیم الشان أمر د ترسره کولو په نیت د دې سپېڅلې سرېې ملګری شو، دا چې په دې ځپانده اراده کې ئي د په زړه پوري آرمانونو پوره کېدل د قسمت د موجونو تر تقدیري پوښښ لاندي راغلل او دا تنکۍ هڅه یې په نیمګړې لارکې ځوانیمرګه او یا هم نیمه خوا شوه.

## دکیسې تفصیل یې داسې و:

خپله حاجی زیارت ګل ویل له سعودي عربستان څخه د مجاهدینو له یوې سرېې سره ملګری شوم، چې د جهاد په نیت عراق ته روان وو،له مونږ سره موټر او په موټرو کې اسلحه وه، د سعودی او عراق ترمینځ دیوه سرحدي ښار په یوه مسجد کې مو لمونځ اداء کولو چې د سعودی عربستان اجیرې شرطې مسجد محاصره کړ او ننبته پیل شوه چې په نتیجه کې یې زمونږ څو تنه ملګری شهیدان شول او مونږ څو تنه د سعودی حکومت شرطې په اسارت ونیولو او زندان ته یې انتقال کړو، د تحقیق پر مهال چې له ما نه پوښتنه وشوه؛ ما ورته وویل: زه افغانی یم او له خپل کفیل سره مې لانجه کړې ده او دلته راتښتیدلی یم، غوښتل مې چې په دغه صحرایی سیمو کې د سعودی د حکومت او کفیل څخه پټ یو کاروبار وکړم او خپلو اولادونو ته نفقه برابره کړم او ور ویې لیږم ،اوس مې په دې مسجد کې لمونځ کاوه چې دغه لانجه پېښه شوه او زه هم تاسي له دې برید کوونکو سره یوځای ونیولم.

یاده دي وي چي: دا تحقیق ماته زما هغو مجاهدو ملګرو راوښود چي زه ورسره د جهاد په اراده عراق ته روان وم، ۸میاشتې مي په بندیخانه کي تیري کړې او وروسته د اجنبي په تور او د سعودی عربستان له قانون نه په خلاف ورزي افغانستان ته سفر شوم.

شهید حاجی صاحب زیارت ګل په ۱۳۸۲هش کال د وردګو ولایت د سید اباد په ولسوالۍ کي د جهاد او قربانۍ په اراده د افغانستان د اسلامی امارت د سرښندونکي لښکر ملګری شو او د امریکایي ښکېلاک پر ضد یي په ګڼ شمیر بریدونو کي برخه لرله او هم د ګڼو بریدونو تنظیموونکی وو.

ملا تاج محمد چي د هغه وخت یو وتلی او د جنګي تکتیکونو یو ماهر سرګروپ وو، د حاجی زیارت ګل په اړه داسي وایي: ۱۳۸۲هش کال غالباً د پسرلي لومړنۍ (حمل) میاشت به وه، زه د سید اباد ولسوالۍ د ډنډوکي په کلي کي ووم، چي حاجی زیارت راغی او له ماسره یې په جهاد بیعت وکړ او مونږ په دغه ۱۳۸۲هش کال کي د زیاتو کمینونو په ترڅ کي پر دښمن وسلوال بریدونه ترسره کړل، له دې جملې په ۱۵ وسلوالو بریدونو کي چي د خواجه احمد بابا، اوتړیو، ملیخلو، حیدرخیلو سیموکي یوازي او یوازي پر صلیبي یرغلګرو ترسره شوي، حاجی زیارت ګل له مونږ سره شرکت درلود، د خواجه احمد بابا په کمین کي یو ځل په لاس باندي زخمي هم شو.

په *۱۳۸۷* هش کال کښې حاجی زیارت ګل په «۷» وسلوالو بریدونو کي چي په مکار دښمن ترسره شوی برخه واخیسته.

جناب حاجی صاحب زیارت ګل په: ۱۹ {سرطان} ۱۳۹۲ هجری شمسی کال د چارشنبې په ورځ د اشغالګرو د وحشي بمبار په ترڅ کي د ډنډوکي په سیمه کي په داسي حال کي چي د دښمن کاروان او محافظین یي د دهشکې تر سخت برید لاندې نیولی وو، په شهادت ورسید، انالله و انا الیه راجعون.

د روژې په مبارکه میاشت کې د بدن مقاومت کمیږي، یو شمیر خوړو او میوو ته اړتیا وي چې وکولای شي بدن له کمزوري کیدو څخه وژغوري، د اړتیا وړ ویټامین یې ور پوره کړي او بدن ته یې ډیره انرژي ورکړي.

خرما چې د اسلامي لارښودنو په رڼا کې یې ښه یادونه شوې او روژه ماتول هم پرې ثواب لري، په خپل جوړښت کې ویټامین بی (B) پوتاشیم، کلسیم او مګنیزیم لري او د دې

# روژه نیوونکو لپاره انرژي لرونکې میوې

ژباړن : بلال سادات

ویټامینونو کموالی په بدن کې کمزوري او نور مشکلات رامنځ ته کوي. د خرما خوړوالی هم د خوړو په هضم کې مهم رول لوبولی شي

تازه او وچ زردالو هم ویټامین بی (B) ویټامین سي(C) پوتاشیم، کلسیم او وسپنه لري او د روژې په میاشت کې د دې میوې خوړل ډیر ګټور دي. څیړنو ښودلې چې زردالو د یو شمیر مرضونو د رامنځ ته کیدو مخنیوی هم کوي.

دغه راز انځر چې په جوړښت کې یې پوتاشیم، مګنیزیم، مس ، وسپنه او کلسیم شته او انسان ترې په سرعت سره انرژي ترلاسه کولای شي، د وینې په جوړښت او د معدې په فعالیت کې ډیره مرسته کوي.

او همدارنګه یو ډول توري الوچې چې خوړل یې په روژه کې د انسان د وجود په مقاومت کې ډیره مرسته کوي د ښکلې خوند ترڅنګ بیلابیل ویټامینونه هم لري، په الوچه کې ویټامین ای (A) ویټامین بی (B) پوتاشیم، فاسفورس، وسپنه، کلسیم او مګنیزیم هم شته.

دا هغه میووې دي چې که یو کس یې په روژه کې وکاروي د اړتیا وړ انرژي به یې ترلاسه کړي او د بدن د مقاومت د کمزوري کیدو څخه به یې مخنیوی شوی وي.